د پوهنې وزارت

# د رسامۍ هنر

## دویم ټولګی





د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ. ش.





# ملي سرود

دا وطن افغانستـــان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولـو کـور دی
د پښـتـون او هــزاره وو
ورسـره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېــواد به تل ځلیږي
په سـینـه کې د آسـیـا به
نوم د حق مـو دی رهبـر

دا عــزت د هــر افغان دی
هر بچی یې قهرمـــان دی
د بــلـوڅـــو د ازبکـــو
د تـرکمنـــو د تـاجکـــو
پـامیریـان، نـورسـتانیـان
هــم ایمـاق، هم پشه یان
لکه لمر پر شـنه آسـمان
لکــه زړه وي جـاویـــدان
وایــو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




د پوهنې وزارت

# د رسامۍ هنر

## دویم ټولگی

د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ . ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** د رسامۍ هنر

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د هنر برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارټمنت غړي

**ټولګی:** دویم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۷ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:** بهير مطبعه

**بریښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# (لړليک)

سرلیک ........................................................................................ مخ

# د زردالو انځور

**موخه:** د زردالو له رسمولو او رنګولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



## پوښتنه

- په لاندې انځور کې کومه میوه وینئ؟






د زردالو شکل ته په ځیر وګورئ، وروسته د هغه د رسمولو پړاوونو ته پاملرنه وکړئ، هغه په خپلو کتابچو کې رسم او رنګ کړئ.



۱



۲




په خپلو کتابچو کې زردآلو رسم او رنګ کړئ.

# د تور بانجان رسم

**موخه: د تور بانجان له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتيا.**



**پوښتنې**

- **لاندې انځور ته وګورئ او ووایئ چې څه نوم لري؟**
- **ستاسو په آند تور بانجان پر کومو رنګونو رنګیږي؟**



**۳**




زده کوونکي دې د تور بانجان د رسمولو پړاوونو ته پاملرنه وکړي او هغه دې رنګ کړي.







تور بانجان په خپلو کتابچو کې په پنسل رسم او بیایې رنګ کړئ.

# گل دانۍ

**موخه:** دګلدان له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنه**

- ځو ډوله ګلدانونه مو لیدلي دي؟



۳




**د ګلدان د رسمولو پړاوونه په پام کې ونیسئ، هغه رسم او رنګ کړئ.**



**۱**



**۲**




**په خپلو کتابچو کې ګلدان رسم او بیایې په خپله خوښه رنګ کړئ.**

# د رنګونو پېژندنه

موخه: له بېلابېلو رنګونو سره د زده کوونکو بلدتيا.



پوښتنه

- تاسو څو ډوله رنګونه پېژنئ؟








زده کوونکي دې د درې ډوله ( سره، ژېړ، آسماني) رنګونو په باب له یو بل سره خبرې وکړي، بیا دې آسماني او ژېړ، سور او ژېړ او آسماني او سور رنګونه سره یوځای او ګډ کړي.


آسماني


ژېړ


شین


سور


ژېړ


نارنجي


آسماني


سور


بنفش




زده کوونکي دې په خپله خوښه له پورتنیو انځورونو څخه یو انځور رسم او رنګ کړي.

# د ونې رسم

موخه: د ونې له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



پوښتنه

- په لاندې شکل کې د څه شي رسم وينئ؟



۳




د ونې د رسمولو پړاوونو ته په پاملرنې سره، هغه په خپلو کتابچو کې رسم او رنګ کړئ.



۲



۱




په خپلو کتابچو کې ونه رسم کړئ، بیایې د خپلې خوښې په رنګونو رنګ کړئ.

# د غاټول د گل رسم

**موخه:** د غاټول گل له رسمولو او رنگولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنه**

- ستاسو په آند غاټول گل کوم رنگ لري؟



**۳**




**زده کوونکي دې د غاټول ګل د رسمولو پړاوونو ته په پاملرنې سره، خپل رسم له لومړي پړاو څخه پیل کړي، له هغه وروسته چې د پنسل په واسطه رسم بشپړ شو، بیا دې هغه رنګ کړي.**



۲



۱



**کورنۍ دنده**

**زده کوونکي دې د کتاب له مخې غاټول ګل په خپلو کتابچو کې رسم او رنګ کړي.**

# ختین دخلک

**موخه**: د ختین دخلک له رسمولو او رنګولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنه**

- آیا تاسو ویلی شئ چې له لاندیني دخلک څخه څه ګټه اخیستل کېږي؟



۳




**د ختېن «دخلک» د رسمولو پړاوونو ته په پاملرنې، هغه په خپلو کتابچو کې په پنسل رسم او بیایې رنګ کړئ.**





**۲** **۱**




**زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې له خپلې خوښې سره سم ختېن دخلک رسم، بیا دې رنګ کړي او ټولګي ته دې راوړي.**

# د رنگ د شیندلو او پو کولو په واسطه د شکلونو رسمول

موخه: زده کوونکي به د رنگ د پو کولو په واسطه د شکلونو له جوړولو سره آشنا شي.



پوښتنه

- آیا تاسو داسې شکل لیدلی دی، چې د رنگ د پُو کولو په واسطه جوړ شوی وي؟



۲




زده کوونکي دې د سپین کاغذ پرمخ رنګ واچوي، هغه دې د قلم د نیچې(دروې) په واسطه پو کړي، چې له هغه څخه ونې ته ورته شکل جوړ شي.



۱



کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلو کتابچو پرمخ رنګ واچوي، وروسته دې د قلم د نیچې په واسطه پو کړي، ترڅو یو شکل رامنځ ته شي.

# د غره رسمول

**موخه**: د غره له رسمولو او رنگ کولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنه**

- په لاندې انځور کې څه وینئ؟



۲




زده کوونکي دې د غره انځور د کتاب له مخې په خپلو کتابچو کې په پنسل رسم، وروسته دې هغه رنګ کړي.



١



کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې غر رسم او رنګ کړي.

# د رنګ په واسطه د شکل جوړول

**موخه**: له هغو تصویرونو سره د زده کوونکو آشنایي چې د رنګولو او کاغذ دقات کولو په واسطه جوړیږي.



**پوښتنه**

- **ستاسو په نظر لاندې شکل له څه شي سره ورته والی لري؟**






زده‌کوونکي دې د (۱-۲) شکلونو په شان پتنګ په نیمه بڼه رسم او رنګ کړي، وروسته دې کاغذ له منځ څخه قات کړي، ترڅو چې د پتنګ بله نیمه تنه د کاغذ پرمخ جوړه شي.



۲



۱



کورنۍ دنده

زده کوونکي دې له پورتنۍ نمونې سره سم د پتنګ شکل په خپلو کتابچو کې تمرین کړي.

# د خاورينې کاسې رنګ

**موخه: د خاورينې کاسې له رسمولو او رنګولو سره د زده کوونکو بلدتيا.**



**پوښتنه**

**- په لاندې شکل کې څه شی وينئ؟**






زده کوونکي دې له (۱-۲) نمونو سره سم خاورینه کاسه په پنسل رسم او له بشپړیدو وروسته دې رنګ کړي.



۱



۲




زده کوونکي دې د کتاب له مخې د خاورینې کاسې شکل په پنسل رسم او له بشپړیدو وروسته دې هغه رنګ کړي.

# له ختهو ځخه د شکلونو جوړول

موخه: له ختهو ځخه د ماشومانو لپاره د سیمه ییزو لوبو د شیانو په جوړولو پوهېدل.



پوښتنه

-آیا تاسې کله له ختهو کوم شکل جوړ کړی دی؟






د زده کوونکو هره ډله دې یو شکل غوره کړي، د هغې د جوړښت پړاوونو ته په ژورې پاملرنې سره دې یوه کاسه له خټو جوړه کړي.



۱



۲



۳




په خپله خوښه یو شی له خټو جوړ او ټولګي ته یې راوړئ.

# د کوټې رسم

**موخه: د کوټې له رسمولو او رنګولو سره د زده کوونکو بلدتیا.**



**پوښتنه**

- **آیا تراوسه مو کومه کوټه رسم او رنګ کړې ده؟**






زده کوونکي دې د (۱-۲) نمونو په شان کوټې رسم او له بشپړیدو وروسته دې رنګ کړي.



۱



۲




زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې یوه کوټه رسم او بیا دې هغه رنګ کړي.

# د يوه الوتونکي رسمول

**موخه:** د يوه الوتونکي له رسمولو او رنګولو سره د زده کوونکو آشنايي.



**پوښتنه**

- تاسې کله لاندې انځور رسم کړی دی؟



۳




د یوه الوتونکي د رسمولو پړاوونو ته په پاملرنې سره، هغه په خپلو کتابچو کې رسم او رنګ کړئ.






کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د الوتونکي انځور په کتاب کې ښه وګوري، وروسته دې هغه په خپلو کتابچو کې رسم او رنګ کړي.

# دتوپ رسمول

**موخه: د توپ له رسمولو او رنګولو سره د زده کوونکو آشنايي.**



**پوښتنه**

- په لاندې شکل کې څه وينئ؟



**۳**




**د توپ د رسمولو پړاوونو ته په ژورې پاملرنې سره، هغه په کتابچو کې په پنسل رسم او رنگ کړئ.**





**۲**




**زده کوونکي دې توپ د کتاب له مخې په خپلو کتابچو کې رسم او بیا دې یې رنگ کړي.**

# د مېز رسمول

موخه: د مېز له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



پوښتنه

- ستاسو په نظر لاندې انځور د څه شي دی؟



۳




زده کوونکي دې د مېز د رسمولو پړاوونو ته په پاملرنې سره مېز رسم کړي، بیا دې هغه رنګ کړي.









کورنۍ دنده

زده کوونکي دې له خپلې خوښې سره سم مېز په خپلو کتابچو کې رسم او بیا دې رنګ کړي.

# د څوکۍ رسمول

موخه: د څوکۍ له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتيا.



**پوښتنه**

- تاسې کله څوکۍ رسم او رنګ کړې ده؟



**۳**




زده کوونکي دې (۱-۲) شکلونو ته پاملرنه وکړي، بیا دې په خپلو کتابچو کې رسم او رنګ کړي.





۱



۲




په خپلو کتابچو کې څوکۍ رسم او بیا یې رنګ کړئ.

# ډیزاین

**موخه: د رنګونو او خطونو په واسطه له ډیزاین سره د زده کوونکو بلدتیا.**



**پوښتنې**

- **د لاندې شکل په اړوند څه ویلی شئ؟**
- **له لاندې شکل څخه د څه لپاره ګټه اخیستل کیږي؟**



**۲**




ډیزاین په ځېر وګورئ، رنګونو او خطونو ته یې پاملرنه وکړئ، دا ډول شکلونه د رسامۍ په هنر کې د ډیزاین په نوم یادیږي.

تاسې په خپلو کتابچو کې له لاندې شکل سره سم یو شکل رسم کړئ.



۱



کورنۍ دنده

پورتنی شکل په کتابچو کې رسم او بیا یې رنګ کړئ.

# له کاغذ څخه د ګل جوړول

موخه: په رنګ کاغذ کې د ګل له رسمولو او قیچی (بیاتي) کولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



پوښتنه

-آیا کله مو له رنګ کاغذ څخه ګل جوړ کړی دی؟



۳




زده کوونکي دې له لاندې شکل سره سم په سپین یا رنگ کاغذ کې گل رسم، بیا دې هغه د بیاتي په واسطه قیچي(پرې) کړي، وروسته دې هغه د سپین کاغذ پرمخ سریښ کړي.



۲ ۱




زده کوونکي دې گل رسم، وروسته دې هغه قیچي (پرې) او د سپین کاغذ پرمخ دې سریښ کړي.

# له کاغذ څخه د بادي څرخ جوړول

موخه: له لرګي او کاغذ څخه د پرپرک له جوړولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



پوښتنه

- ستاسو په آند پرپرک (څرخه) له څه شي څخه جوړیږي؟






زده کوونکي دې د پرپرک جوړولو پړاوونو ته په پاملرنې سره له کاغذ څخه د (۱-۲) شکل سره سم پرپرک جوړکړي، د پرپرک د حرکت په واسطه کولی شئ د باد د حرکت لوری هم معلوم کړئ.



۱



۲




له کاغذ څخه د پرپرک جوړول تمرین او خپل ښوونکي ته یې وښیئ.

# د ګوګړو له پلتو څخه د شکلونو جوړول

موخه: د ګوګړو له پلتو څخه د بېلابېلو شکلونو له جوړولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



پوښتنه

- تراوسه مو د ګوګړو له پلتو څخه کوم شکل جوړ کړی دی؟



## فعالیتونه



زده کوونکي دې پر ډلو وویشل شي، هره ډله دې له ګوګړو څخه یوه اندازه پلتې واخلي، په خپل منځ کې له مشورې وروسته دې له خپلې خوښې سره سم یو شکل جوړ کړي.

۱

۲

## کورنۍ دنده

د یوه شکل څو حرکتونه د ګوګړو له پلتو جوړ او د هغه له مخې یې په خپلو کتابچو کې په پنسل رسم کړئ.

# د چرګې رسمول

موخه: د یوې چرګې له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



**پوښتنه**

- تاسو کله چرګه رسم کړې ده؟



۳




**زده کوونکي دې د چرګې د رسمولو پړاوونو ته پاملرنه وکړي، هغه دې له لومړي پړاو پیل او له بشپړیدو وروسته دې رنګ کړي.**



**۱**



**۲**



**کورنۍ دنده**

**زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې یوه چرګه رسم او بیا دې هغه رنګ کړي.**

# له کاغذ څخه د چرګې جوړول

موخه: له کاغذ څخه د چرګې له جوړولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



پوښتنه

- ستاسو په آند لاندې شکل له کومو توکو څخه جوړېږي؟



۲




زده کوونکي دې (۱) شکل ته پاملرنه وکړي، هغه دې د کاغذ پرمخ رسم کړي، وروسته دې هغه د بیاتي په واسطه غوڅ، بیا دې رنګ او شکل دې په کتابچو کې سریښ کړي.







په خپله خوښه یو شکل غوره کړئ، بیا هغه رسم او رنګ کړئ، وروسته یې په کتابچو کې ونښلوئ.

# د چاينکۍ او پيالۍ رسمول

موخه: د چاينکۍ او پيالۍ له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتيا.



**پوښتنه**

-آيا تراوسه مو له لوښو څخه کوم شکل رسم او رنګ کړی دی؟



**٣**




**زده کوونکي دې (۱-۲) شکل د رسمولو پړاوونو ته په پاملرنې سره، چاینکه او پیاله رسم او له بشپړیدو وروسته دې رنګ کړي.**



۱



۲



**کورنۍ دنده**

**زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې چاینکه او پیاله لومړی رسم، بیا دې رنګ کړي.**

# د ګيلاس رسمول

موخه: د ګيلاس د رسمولو له طريقې او رنګ کولو سره د زده کوونکو آشنايي.



پوښتنه

-کله مو ګيلاس رسم او رنګ کړی دی؟



۳




زده کوونکي دې (۱-۲) شکل د رسمولو پړاوونه په پام کې ونیسي، بیا دې ګیلاس رسم او له بشپړیدو وروسته دې رنګ کړي.



۱



۲




زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې ګیلاس رسم او رنګ کړي.

# د منگي رسمول

موخه: د منگي له رسمولو او رنگولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



پوښتنه

- ستاسو په نظر منگی پرکومو رنگونو رنگولای شئ؟



۳




زده کوونکي دې (۱-۲) شکل ته پاملرنه وکړي، هغه دې په کتابچو کې رسم او بیا دې رنګ کړي.



۱



۲




زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې منګی، پړاوو پر پړاو رسم او رنګ، وروسته دې هغه قیچي او د رسم په کتابچو کې سریښ کړي..

# ټاپه کاري کول

موخه: د ټاپه کولو له طريقې څخه په ګټې اخيستنې سره د شکلونو له جوړولو سره د زده کوونکو آشنايي.



پوښتنه

- په لاندې شکلونو کې څه وينئ؟





١






زده کوونکي دې یوه بنډۍ په منځ کې پرې کړي، هغه دې پر رنګ ککړه کړي، وروسته دې د کاغذ پرمخ ټاپه کړي.







۲



کورنۍ دنده

زده کوونکي دې له بنډۍ یا کومې بلې ترکارۍ څخه ټاپه جوړه او په خپلو کتابچو کې دې پرې ټاپه کړي.

# د شکلونو رسمول

موخه: د پوکڼۍ پرمخ د شکلونو له رسمولو او ښکلې کولو سره د زده کوونکو بلدتیا.



پوښتنه

- تراوسه مو د پوکڼۍ پرمخ کوم شکل رسم کړی دی؟



۱




**زده کوونکي دې د امکان په صورت کې څو پوکڼۍ ټولګي ته راوړي، هغه دې له (۱-۲) شکل سره سم پو کړي او د رنګه کاغذ په واسط دې هغې ته ښکلا ورکړي او بیا دې د شکل له مخې په خپلو کتابچو کې رسم کړي.**



**۲**




**د امکان په صورت کې یوه پوکڼۍ له هوا ډکه کړئ، بیا د رنګه قلم او رنګه کاغذ په واسطه هغې ته ښکلا ورکړئ، یا هغه د کتاب د فعالیت له مخې رنګ کړئ.**

## دویمه برخه

## د رسامۍ هنر د تدریس لارښود

لومړی لوست

(۱) مخ

لومړی درسي ساعت **(د تدریس وخت یو درسي ساعت)**

| | | |
|---|---|---|
| **د لوست سرلیک** | **د زردالو رسمول** | |
| **عمومي موخې** | د زردالو له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتیا. | |
| **د زده کړې موخې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې** | له زده کوونکو هیله کېږي چې د هر لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي<br>• زده کوونکي به د رسمولو له طریقې سره بلدتیا پیدا کړي.<br>• یو شکل به رسم کړای شي.<br>• له رسمولو سره به مینه پیدا کړي. | |
| **د تدریس لارې** | ډله ییز او ځانګړي فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه، عملي کار او تمرین. | |
| **د تدریس اړین توکي** | کتاب، کتابچه، قلم، پنسل، پنسل پاک، د کرکي قلم، تباشیر، مشوانۍ او خط کش. | |
| **د ارزونو لارې** | په عملي توګه مشاهده کول. | |
| **لومړني یا مقدماتي فعالیتونه** | د سلام په ورکولو لنډه احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر کال له مضمون سره د نوی کال د مضمون تړاو او د نوي کال مبارکي. | ۵ دقیقې |
| | **د انګیزې رامنځ ته کول**<br>**پوښتنه:**<br>- د زردالو د رسمولو په اړوند څه ویلی شئ؟ | ۵ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | وخت |
|---|---|---|
| زردالو پرتخته رسم کړئ د هغه د رسمولو د پړاوونو په اړوند زده کوونکو ته معلومات ورکړئ.<br>-د پنسل په واسطه د رسمولو وروستي پړاو په اړوند زده کوونکو ته معلومات ورکړئ.<br>- د زده کوونکو ټول کارونه وڅارئ.<br>- د دوی کارونه وارزوئ، د دوی د هڅونې لپاره يې رسمونه پرتخته ځوړند کړئ. | - زده کوونکي د ښوونکي لارښوونو ته ژوره پاملرنه کوي، هڅه کوي چې هغه عملي کړي.<br>-زده کوونکي د تختې له مخې رسمونه وباسي.<br>- په سم ډول د ښوونکي په مرسته رسمونه بشپړ او په کتابچو کې يې رسموي.<br>-خپل نظافت ته د رسمولو پر وخت پاملرنه کوي، خپل کالي او لاسونه له ککړتيا ساتي. | ۳۵<br>دقيقه |

**ارزونه**: د خپل ډاډ ترلاسه کولو لپاره چې زده کوونکي په لوست پوهيدلي دي او که نه، د څو پوښتنو په کولو هغوی ارزوي.

**کورنۍ دنده**: د درسي کتاب له مخې د زردالو انځور وکاږي، بيا يې ټولګي ته راوړئ.

### اضافي معلومات

ماشومان په ابتدايي دوره کې له لومړي ټولګي څخه تر دريم پورې له خپل عمر سره سم مينه وال دي چې د رسمولو، رنګولو له لارې له ساده سيمه ييزو موادو، لکه: ختې، لرګي او بېلابېلو کاغذونو څخه هغه شيان چې په ذهن کې يې لري جوړ کړي. د دې دورې زده کوونکي له ۱۵- څخه تر ۳۰ دقيقو پورې يو هنري کار په ډېره مينه تر سره کوي، خو له دې زيات يې مينه کمېږي، په دې صورت کې د هنري کار د اجرا کولو دوام څه ګټه نه لري، بلکې ځينې وختونه زيان هم لري.د (۷ - ۹) کالو پورې ماشومان ډېر وخت له ځان سره مصروف وي، په دې معنا چې هر څه له خپلې خوښې او علاقې سره غواړي، هغه کار چې دوی ته په ګوته کېږي. که چېرته د ماشوم په کورنۍ او چاپېريال پورې اړه ولري، په دې صورت کې ماشوم هغه کار په پوره مينه ترسره کوي او په چټکۍ سره زده کړه ترسره کېږي. په دې عمر کې زده کوونکي په بې صبرۍ سره غواړي چې د خپل کار پايله وګوري. له دې امله بايد داسې فعاليت ورته غوره شي، چې په لږ وخت کې ترسره شي. هغه ماشوم چې د (۹-۱۱) کالو ترمنځ عمر لري، له بېلابېلو رنګونو سره ډېره مينه لري، هغوی پرېږدئ چې له خپلې خوښې سره سم رسمونه رنګ کړي.

**دويم لوست**

(۱-۲) مخ

دويم درسي ساعت **(د تدريس وخت يو درسي ساعت)**

| | |
|---|---|
| **د لوست سرليک** | **د زردالو رنګول** |
| **عمومي موخې** | د زردالو له رنګه کولو سره د زده کوونکو بلدتیا. |
| **د زده کړې موخې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې** | له زده کوونکو هيله کېږي چې د هر لوست په پای کې لاندې موخوته ورسيږي<br>• زده کوونکي به له رسمولو او رنګولو سره بلدشي.<br>• يو شکل به رسم او رنګه کړای شي.<br>• له رسامۍ او رنګولو سره به مينه پيدا کړي. |
| **د تدريس لارې** | ډله ييز او ځانګړي فعاليتونه، پوښتنې او ځوابونه، عملي کار او تمرين. |
| **د تدريس اړين توکي** | کتاب، کتابچه، قلم، پنسل، پنسل پاک، د کرکي قلم، تباشير، مشواڼۍ او خط کش. |
| **د ارزونو لارې** | په عملي توګه مشاهده کول. |

| | | |
|---|---|---|
| **لومړني يا مقدماتي فعاليتونه** | د سلام، لنډه احوال پوښتنه، حاضرۍ اخيستل، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه د تېر لوست يادونه او له نوي لوست سره د هغې اړيکه. | ۵ دقيقې |
| | **د انګيزې رامنځ ته کول**<br>**پوښتنه:**<br>- کله مو زردالو رسم او رنګه کړې ده؟ | ۵ دقيقې |

| **د ښوونکي فعاليتونه** | **وخت** |
|---|---|
| - د ټولګي پر تختې زردالو رسم او د هغې د رنګه کولو د پړاوو په اړوند زده کوونکو ته معلومات ورکړئ.<br>- د رسمولو د وروستي پړاو او د هغه د رنګونو په باب معلومات ورکړئ.<br>- د زده کوونکو ټول کارونه وڅارئ.<br>- د زده کوونکو د تشويق او هڅونې لپاره د هغوی رسمونه پر تخته ونښلوئ. | ۳۵ دقيقه |
| **ارزونه:** د خپل ډاډ ترلاسه کولو لپاره چې زده کوونکي په لوست پوهيدلي دي او که نه، د څو پوښتنو په کولو هغوی وارزوی. | |
| **کورنۍ دنده:** د زردالو انځور وکاږئ له رنګولو وروسته يې ټولګي ته راوړئ. | |